


د پوهنې وزارت

# اسلامي ښوونه او روزنه

## دويم ټولگی



د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ . ش.





# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم




**د پوهنې وزارت**

# اسلامي ښوونه او روزنه

## دویم ټولگی

د چاپ کال : ۱۳۹۸ هـ . ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې


**مضمون:** اسلامي ښوونه او روزنه

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د اسلامي ښوونې او روزنې د برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** دویم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست

# د اسلام بناوې

اسلام پنځه بناوې لري:

۱ – طیبه کلمه

۲– لمونځ

۳– روژه

۴– زکات

۵ – حج



## فعالیت

زده کوونکي دې د اسلام د پنځو بناوو په هکله له یو بل څخه پوښتنې وکړي.



## ارزونه

۱ - د اسلام څو بناوې دي؟

۲ - د اسلام دویمه بناء ووایئ؟

۳ - ترتیب یې کړئ:

- روژه- حج- کلمه- لمونځ- زکات

۱-......... ۲- ......... ۳-......... ۴-......... ۵-.........

دويم لوست

# د طيبې او شهادت کلمې

## ۱ - طيبه کلمه:

لا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ مُحَمَّدٌ رَّسُولُ الله

## ۲ - د شهادت کلمه:

اَشْهَدُ اَنْ لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّداً عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ.

## د کلمو تکرارول:

- اَشْهَدُ اَنْ لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ.

- وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ.



## فعالیت

زده کوونکي دې د طیبې او شهادت کلمې یو له بل څخه وپوښتي.



## ارزونه

۱ - طیبه کلمه ووایئ.

۲ - د شهادت کلمه ووایئ.

۳ - بشپړه یې کړئ:

اَشْهَدُ اَنْ.............اِلاَّ اللّٰهُ..............  مُحَمَّداً..................... وَرَسُوْلُهُ.



# د تمجید کلمه (۱)

سُبْحَانَ اللّٰه، **وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ**، ...



## فعالیت

زده کوونکي دې لوست ښوونکي پسې په لوړ غږ تکرار کړي او څو ځله دې ووايي.



## ارزونه

۱ - د تمجید د کلمې لومړۍ برخه په لوړ غږ ووایئ.

۲ - د تمجید د کلمې لومړۍ برخه له یاده ووایئ .



# د تمجید کلمه (۲)

وَلاَ اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰه، وَاللّٰه اَکْبَرُ، ...

د کلمو تکرار:

- وَلاَ اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰهُ
- واللّٰهُ اَکْبَرُ



## فعالیت

زده کوونکي دې په بېلو بېلو ډلو کې د لوست متن له یو بل څخه وپوښتي.



## ارزونه

۱ - د تمجید د کلمې دویمه برخه ووایئ.

۲ - بشپړ یې کړئ.

«سُبْحَانَ اللّٰهِ................ وَاللّٰه اَکْبَرُ»

۳ - د تمجید د کلمې دویمه برخه له یاده ووایئ.



# د تمجيد كلمه (۳)

وَلا حَوْلَ وَلا قُوَّةَ اِلا بِاللهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ.

د كلمو تكرار:

- وَلاَ حَوْلَ
- وَلاَ قُوَّةَ
- اِلاَّ بِاللهِ
- الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ



## فعالیت

زده کوونکي دې د تمجید کلمه په ډلییز ډول تکرار او له یو بل څخه وپوښتي.



## ارزونه

بشپړ يې کړئ:

«سُبْحَانَ الله................وَاللّٰهُ اَکْبَرُ»

«وَلَاحَوْلَ............................»



# د تمجید کلمه

**سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلاَ اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَکْبَرُ وَلاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ اِلاَّ بِاللّٰهِ العَلِیِّ العَظِیمِ.**

**د کلمو تکرار:**

- **سُبْحَانَ اللّٰهِ**
- **وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ**
- **وَلاَ اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰهُ**
- **واللّٰه اَکْبَرُ**
- **وَلاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ**
- **اِلاَّ بِاللّٰهِ العَلِیِّ العَظِیمِ**



## فعالیت

زده کوونکي دې د تمجید کلمه په لوړ غږ ووايي او له یو بل څخه دې وپوښتي.



## ارزونه

۱ - د تمجید کلمه په لوړ غږ ولولئ.

۲ - د تمجید کلمه له یاده ووایئ.

۳ - بشپړه یې کړئ:

سُبْحَانَ اللهِ........................ وَاللهُ اَكْبَرُ

وَلَاحَوْلَ............الا............... العظيم.



## اووم لوست

# په الله ﷻ ایمان

**آمنتُ بِاللهِ....**

**معنا: په الله ﷻ ایمان لرم.**

- **باور لرم چې الله ﷻ یو دی.**
- **شریک او ساری نه لري.**
- **قادر او ځواکمن دی.**
- **د ټولو څیزونو پیدا کوونکی دی.**



## فعالیت

زده کوونکي دې په ډلییز ډول لوست تکرار کړي.



## ارزونه

۱ - «آمنتُ بِاللّٰهِ» معنا کړئ.

بشپړ یې کړئ:

۲ - باور لرو چې........ یوازنی ذات دی.

۳ - قادر او..............دی.

۴ - شریک او......... نه لري.



اتم لوست

# په پرښتو ایمان

...وَمَلَائِکَتِهِ...

**معنا:** او د الله ﷻ په پرښتو ایمان لرم.

- باور لرو چې پرښتې د الله ﷻ مخلوق دي.
- د نور څخه پیدا شوې دي.
- د الله ﷻ له امر څخه سرغړونه نه کوي.



## فعالیت

زده کوونکي دې لوست په خپلو منځو کې تکرار کړي.



## ارزونه

۱ - وملائکته څه معنا لري؟

بشپړ یې کړئ:

۲ - پرښتې د........... مخلوق دي.

۳ - له................ پیدا شوې دي.



نهم لوست

# په آسماني کتابونو ایمان

...وَكُتُبِهِ....

**معنا**: او د الله جل جلاله په کتابونو باندې ایمان لرم.

آسماني کتابونه حق دي.

آسماني کتابونه څلور دي:

۱_ تورات: په **موسی** علیه السلام نازل شوی دی.

۲_ زبور: په **داود** علیه السلام نازل شوی دی.

۳_ انجیل: په **عیسی** علیه السلام نازل شوی دی.

۴_ **قرآن کریم**: په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نازل شوی دی.



## فعالیت

زده کوونکي دې د آسماني کتابونو په هکله له یو بل څخه پوښتنې وکړي.



## ارزونه

۱ - «وکتبه» وژباړئ.

۲– آسماني کتابونه څو دي؟ نومونه یې واخلئ.

۳ - لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

- انجیل پر........ علیه السلام

- تورات پر........ علیه السلام

- زبور پر ........ علیه السلام

- او...................... پر حضرت محمد ﷺ نازل شوی دی.



# په پیغمبرانو عليهم السلام ایمان

وَرُسُلِهٖ....

ژباړه: او د الله جل جلاله په پیغمبرانـو باندې ایمان لرم.

ټول پیغمبران **حق** دي.

د بشر د لارښوونې لپاره را استول شوي دي.

تر ټولو لومړنی پیغمبر **آدم** عليه السلام او وروستنی **حضرت محمد** صلی الله علیه وسلم دی.



## فعالیت

زده کوونکي دې د پیغمبرانو عليهم السلام په هکله یو له بل څخه پوښتنې وکړي.



## ارزونه

۱ - پیغمبران عليهم السلام د څه لپاره را استول شوي دي ؟

۲ - لاندې تش ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

- ټول پیغمبران عليهم السلام ............. دي.

- تر ټولو لومړنی پیغمبر............. او وروستنی یې............. دی.





# په آخرت ايمان

...وَالْيَوْمِ الآخِرِ...

**ژباړه:** او د آخرت په ورځ ايمان لرم.

ايمان لرو چې:

د آخرت ورځ **راتلونکې** ده.

د آخرت ورځ د **حساب** ورځ ده.

په آخرت کې هر چا ته د **خپل عمل بدل او سزا** ورکول کيږي.



## فعالیت

زده کوونکي دې د لوست متن په لوړ غږ ووايي او د لوست په هکله دې يو له بل څخه پوښتنې وکړي.



## ارزونه

۱- آخرت د څه شي ورځ ده ؟

بشپړ يې کړئ:

۲- د آخرت ورځ.......... ده.

۳- په آخرت کې هر چا ته د .......................... ورکول کيږي.



دولسم لوست

# په تقدير ايمان

**وَالْقَدْرِ خَيْرِهٖ وَشَرِّهٖ مِن اللّٰهِ تَعالٰى...**

**ژباړه: او د خير او شر په تقدير چې د الله ﷻ له لوري دی ايمان لرم.**

**د کلمو تکرار:**

- **وَالْقَدرِ خَيرِهٖ**
- **وَشَرِّهٖ**
- **مِن اللّٰهِ تَعالٰى**



## فعالیت

زده کوونکي دې د تقدير خير او شر په هکله يو له بل سره خبرې وکړي.



## ارزونه

۱-خير او شر د چا له لوري دی؟

بشپړ يې کړئ:

۱ - والقدر.........................................

۲ - او د خير ...................................له لوري دی ايمان لرم.



# په بیا را ژوندي کېدلو ایمان

... وَالْبَعْثِ بَعْدَ الْمَوْتِ.

ژباړه: او له مرګه وروسته په بیا را ژوندي کېدو ایمان لرم.

ایمان لرو چې:

له مرګه وروسته ژوندي کېدل حق دي.

د آخرت ژوند د تل لپاره دی.

په حشر کې د انسانانو راټولېدل حق دي.



## فعالیت

زده کوونکي دې د لوست په هکله له یو بل څخه پوښتنې وکړي.



## ارزونه

۱- وَالبَعْثِ بَعْدَ الْمَوْتِ څه معنی لري ؟

۲- له مرګه وروسته ژوندي کېدل.................. دي.

۳- د آخرت ژوند څرنګه دی ؟

۴- د.................. راژوندي کېدل حق دي.



# آمنت بالله

آمَنْتُ بِاللهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَالْقَدْرِ خَيْرِهٖ وَشَرِّهٖ مِنَ اللهِ تَعالىٰ والْبَعْثِ بَعْدَ الْمَوْتِ.

د کلمو تکرار:

آمَنْتُ بِاللهِ

وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ

وَالْيَوْمِ الآخِرِ

وَالْقَدْرِ خَيْرِهٖ وَشَرِّهٖ مِنَ اللهِ تَعاليٰ

وَالْبَعْثِ بَعْدَ الْمَوْتِ.



## فعالیت

زده کوونکي دې آمنت بالله په لوړ غږ تکرار او له یو بل څخه دې پوښتنې وکړي.



## ارزونه

۱– آمَنْتُ بِاللّٰهِ ولولئ.

۲– آمَنْتُ بِاللّٰهِ له یاده ووایئ.

۳- بشپړ یې کړئ:

آمَنْتُ بِاللّٰهِ.................................... وَرُسُلِهِ

وَالْقَدْرِ........................................ تَعالٰی



# قبر

په قبر کې له هر انسان څخه درې پوښتنې

کیږي:

- رب دې څوک دی؟
- دین دې څه دی؟
- پیغمبر دې څوک دی؟



## فعالیت

زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته یادې پوښتنې په خپلو کې تکرار کړي.



## ارزونه

۱ - قبر څه دی؟

۲ - په قبر کې کومې پوښتنې کېږي؟





شپاړسم لوست

# د لمانځه شرطونه

د لمانځه شرطونه اته دي:

۱ـ د بدن پاکوالی.

۲ـ د جامو پاکوالی.

۳ـ د ځای پاکوالی .

۴ـ د وخت پېژندل .

۵ـ د عورت پټول.

۶ـ قبلې ته مخ کول.

۷ـ نیت کول.

۸ـ د تحریمه تکبیر ویل.



## فعالیت

زده کوونکي دې په بیلابیلو ډلو کې د لمانځه د شرطونو په هکله یو له بل څخه پوښتنې وکړي.



## ارزونه

۱ - د لمانځه شرطونه څو دي؟

۲ - د لمانځه شرطونه ووایئ.





# د اوداسه فرضونه

## د اوداسه فرضونه څلور دي:



۱_ د ټول مخ مينځل.



۲_ د لاسونو مينځل
له څنګلو سره.



۳_ د سر د څلورمې برخې
مسح کول.



۴_ د پښو مينځل
له ښنګرو سره.



## فعالیت

زده کوونکي دې د اوداسه فرضونه په عملي بڼه په ټولګي کې را په ګوته کړي.



## ارزونه

۱- د اوداسه فرضونه څو دي ؟

۲- د اوداسه فرضونه ووایئ.





## اتلسم لوست

# د اوداسه عملي طريقه

























## فعالیت

۱ ـ ښاغلی ښوونکی دې په زده کوونکو اودس وکړي.

۲ ـ زده کوونکـي دې د ښـوونکي تر نظر او لارښـوونو لاندې اودس وکړي.



# لمونځ

۱ - نیت.

۲ - اَللّٰهُ اَكْبَر.

۳ - سُبْحَانَکَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِکَ وَتَبَارَکَ اسْمُکَ وَتَعَالٰی جَدُّکَ وَلَآ اِلٰهَ غَيْرُکَ.

۴ - اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ.





٥- بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

٦- الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ (١) الرَّحْمٰـــنِ الرَّحِيْمِ (٢)

مَالِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ (٣) إِيَّاكَ نَعْبُدُ وإِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ

(٤) اِهْدِنَـــا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ (٥) صِرَاطَ الَّذِيْنَ

أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ (٦) غَيرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّيْنَ (٧)

٧- آمين

٨- قُلْ هُوَ اللهُ أَحَـــدٌ (١) اللهُ الصَّمَدُ (٢) لَمْ يَلِدْ

وَلَمْ يُولَدْ (٣) وَلَمْ يَكُن لَّهُ كُفُوًا أَحَدٌ (٤)





شلم لوست

# تسمیع او تحمید

## اَللّٰهُ اَکْبَرْ

- سُبْحَانَ رَبِّیَ الْعَظِیْمِ (درې ځلې)
- سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ.
- رَبَّنَا وَلَکَ الْحَمْدُ.





## اَللّٰهُ اَكْبَرْ

## سُبْحَانَ رَبِّیَ الأَعْلٰى (دريِ حُلي)









يو ويشتم لوست

# التَّحيات

التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ السَّلامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ السَّلامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللّٰهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ.





# درود او دعا

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا
صَلَّیْتَ عَلٰی إِبْرَاهِیْمَ وَعَلٰی آلِ إِبْرَاهِیْمَ إِنَّکَ
حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ.

اَللّٰهُمَّ بَارِکْ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا
بَارَکْتَ عَلٰی إِبْرَاهِیْمَ وَعَلٰی آلِ إِبْرَاهِیْمَ إِنَّکَ
حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ.

اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا آتِنَا فِی الدُّنْیَا حَسَنَةً وَّفِی الْآخِرَةِ
حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ.



اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ.

اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ.

## څلير ويشتم لوست

# د لمانځه د ادا کولو

# عملي طريقه (۲)









# د لمانځه د ادا کولو طریقه (۱)

زده کوونکي د دې لوست د متن په ویلو مکلف نه دي.

## لومړی رکعت:

نیت، د لاسونو پورته کول، تحریمه تکبیر ویل، تــر نامه لاندې د لاســونو تړل، د ثنــاء، تعوذ، بسم الله، د فاتحې سورت او د یوې بلې سورې قرائت کول.

د الله اکبر په ویلو رکوع ته ځو او د تســمیع او تحمید په ویلو بېرته ولاړیږو او د تکبیر په ویلو سره سجدې ته ځو، دوه سجدې کوو.

## دویم رکعت:

دویم رکعت د لومړي رکعت په څیر دی، یوازې دومـره توپیر لري چې پـه دویم رکعت کې ثناء او تعوذ نه ویل کېږي.

له سجدو کولو وروسته کښینو او تشهد «التحیات» وایو، که لمونځ دوه رکعتي و، ورپسې درود او دعا وایو او بیا ښي او کیڼ لور ته سلام اړوو.



### فعالیت

زده کوونکي دې اودس وکړي او عملاً دوه رکعته لمونځ دې اداء کړي.



### ارزونه

١- د لمانځه د لومړي رکعت د ادا کولو طریقه ووایئ.

٢- د لمانځه د دویم رکعت د ادا کولو طریقه ووایئ.

٣- د لمانځه تسبیح ووایئ.

٤- التحیات ووایئ.





# د لمانځه د ادا کولو طریقه (۲)

زده کوونکي د دې لوست د متن په ویلو مکلف نه دي.

## دریم رکعت:

**د دویم رکعت له تشهد ویلو وروسته د تکبیر په ویلو ولاړېږو، که رکعت تش و، یوازې بسم الله او د فاتحې سورت وایو.**

**او نور د لومړي او دویم رکعت په څیر ادا کیږي.**

## څلورم رکعت:

څلورم رکعت د دریم رکعت په څیر دی، خو له سجدو کولو وروسته کښېنو او تشهد «التحیات»، درود او دعا وایو وروسته ښي او کيڼ لوري ته سلام ګرځوو.

که رکعتونه ډک وو؛ نو د فاتحې په سورت پسې یو بل سورت هم وایو.



### فعالیت

زده کوونکي دې د څلور رکعتي لمانځه په هکله په خپلو منځونو کې له یو بل څخه پوښتنې وکړي.



### ارزونه

۱ - د دریم رکعت د ادا کولو طریقه ووایئ.

۲ - د څلورم رکعت د ادا کولو طریقه ووایئ.

۳ - د سجدې تسبیحات ووایئ.





# پنځه فرض لمونځونه (۱)

د سهار لمونځ
څلور رکعته

دوه رکعته سنت

دوه رکعته فرض










د ماسپښین لمونځ
لس رکعته





څلور رکعته
سنت

څلور رکعته
فرض

دوه رکعته سنت






















د مازدیگر لمونځ
څلور رکعته فرض











## فعالیت

زده کوونکي دې د سهار او ماسپښین د لمونځونو د رکعتونو شمیر یو له بل څخه وپوښتي.



## ارزونه

۱- د سهار لمونځ څو رکعته دی؟

۲- د ماسپښین لمونځ څو رکعته دی؟

۳- د ماسپښین لمونځ څو رکعته فرض او څو رکعته سنت دی؟

۴- د مازدیگر لمونځ څو رکعته دی؟

۵- د ماسپښین او مازدیگر لمونځونو تش رکعتونه ووایئ.





# پنځه فرض لمونځونه (۲)

د ماښام لمونځ
پنځه رکعته




د ماخوستن لمونځ
نهه رکعته





## فعالیت

زده کوونکي دې د ماښام او ماخوستن د لمونځونو فرض او سنت رکعتونه له يو بل څخه وپوښتي.



## ارزونه

۱- د ماښام لمونځ څو رکعته دی ؟

۲- د ماخوستن لمونځ څو رکعته دی ؟

۳- د ماښام او ماخوستن لمونځونو تش رکعتونه ووایئ.





# د جماعت لمونځ

په جماعت سره لمونځ کول سنت دي.

په جماعت سره لمونځ کول ډېر ثواب لري.

موږ په جماعت سره لمونځ کوو.



## فعالیت

زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته عملاً په ټولګي کې د جماعت لمونځ تمثیل کړي.



## ارزونه

بشپړ يې کړئ:

۱- په جماعت سره لمونځ.......... دی.

۲- په جماعت سره لمونځ.......... لري.

۳- مور په جماعت سره ..................



# رښتيا ويل

**پيغمبر ﷺ فرمايلي دي:**

**ـ رښتيا وايئ.**

**ـ له دروغو ځانونه وژغورئ.**

**ځکه چې:**

**رښتيا ويل خلاصون او دروغ ويل هلاکت دی.**[1]

ا- صحيح بخاری



## فعالیت

زده کوونکي دې د رښتیا ویلو د ګټو او د دروغو ویلو د ضررونو په هکله له یو بل سره خبرې وکړي.



## ارزونه

۱- حضرت محمد ﷺ د رښتیا ویلو په هکله څه فرمایلي دي؟

۲- د رښتیا ویلو ګټې ووایئ.



# د مور او پلار درناوی

**پيغمبر ﷺ فرمايي: «د مور او پلار سره نيکي او ښېګڼه تر ټولو غوره عمل دی». [1]**

- **موږ د خپل مور او پلار درناوی کوو.**
- **موږ د خپل مور او پلار خدمت کوو.**
- **موږ له خپل مور او پلار سره مينه لرو.**

---

۱- بخاری او مسلم



## فعالیت

زده کوونکي دې د مور او پلار د حقونو په هکله له یو بل سره خبرې وکړي.



## ارزونه

۱- پیغمبر ﷺ د مور او پلار په هکله څه فرمایلي دي؟

۲- بشپړ یې کړئ:

- مور ......................... درناوی کوو.

- مور له ......................... مینه لرو.



# دګاونډي حقوق

ګاونډی پر موږ حق لري.

موږ له ګاونډي سره مرسته کوو.

موږ د خپل ګاونډي درناوی کوو.

ګاونډي ته ضرر رسول ګناه ده.



## فعالیت

زده کوونکي دې د ګاونډي د حقونو په هکله له یو بل سره خبرې وکړي.



## ارزونه

لاندې جملې بشپړې کړئ:

۱- موږ له ............... سره مرسته کوو.

۲- موږ د..................... درناوی کوو.

۳- ګاونډي ..................... ګناه ده.



# د مشرانو حقوق

پیغمبر ﷺ فرمایلي دي:

«څوک چې زموږ د مشرانو درناوی نه کوي زموږ له ډلې څخه نه دی». [1]

- موږ مشرانو ته سلام اچوو.
- موږ د مشرانو خبره منو.
- په کارونو کې له مشرانو سره مشوره کوو.

۱- ( المعجم الکبیر للطبرانی )



## فعالیت

زده کوونکـي دې د مشـرانو د حقونـو پـه هکله له یو بل سـره خبرې وکړي.



## ارزونه

لاندې جملې بشپړې کړئ:

۱- مور ............ ته سلام .........

۲- مور ................. خبره منو.

۳- مور له مشرانو ............ کوو.



# د جومات ادبونه

جومات د **عبادت** ځای دی.

- په اوداسه سره جومات ته داخلیږو.
- د ننوتلو په وخت کې دا دعا وایو:

«اللّٰهُمَّ افتَحْ لِیْ اَبْوَابَ رَحْمَتِکَ»

- لـه جومات څخه د وتلـو پر مهال دا دعا وایو

«اللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُکَ مِنْ فَضْلِکَ»

- په جومات کې منډې وهل، خندل او لوبې کول ګناه ده.



## فعالیت

زده کوونکـي دې د جومـات د ادبونـو پـه هکله له یو بل سـره خبرې وکړي.



## ارزونه

۱ - جومات ته د ننوتلو پر وخت کومه دعا ویل کیږي؟

۲ - له جومات څخه د وتلو پر وخت کومه دعا ویل کیږي؟





# د روغتیا ارزښت

پیغمبر ﷺ فرمایلي دي:

«نظافت د ایمان یوه برخه ده»[1]

نظافت ته پاملرنه نه کول د ناروغیو لامل کېږي.

موږ باید خپل بدن او جامې پاک وساتو.

موږ خپل کور، جومات او ټولګی پاک ساتو.

---

۱- ( صحیح مسلم )



## فعالیت

زده کوونکي دې د روغتیا د ارزښت په هکله له یو بل سره خبرې وکړي.



## ارزونه

۱- پیغمبر ﷺ د نظافت په هکله څه فرمایلي دي ؟

۲- بشپړ یې کړئ:

مور باید.................... پاک وساتو.

مور خپل کور.................... پاک ساتو.



# سوله

اسلام د ورورګلوۍ دین دی.

اسلام موږ پخلاینې ته هڅوي.

الله ﷻ د سولې په هکله فرمايي: ﴿وَالصُّلۡحُ خَيۡرٌ﴾.

ژباړه: او سوله کول غوره دي.

موږ له هیچا سره شخړې او جګړې نه کوو.



## فعالیت

زده کوونکي دې د سولې او پخلاینې په هکله په خپلو کې خبرې وکړي.



## ارزونه

۱ - الله ﷻ د سولې په هکله څه فرمایلي دي؟

۲ - بشپړ يې کړئ:

- اسلام: د ............ دین دی.
- موږ له هیچا سره ........................ نه کوو.

# د مسلمان خوی

پیغمبر ﷺ فرمایلي دي:

«الله تعالی د بنده مرسته کوي، تر هغه پورې

چې بنده دخپل ورور مرسته کوي»[1].

- مونږ له مسلمانانو سره ښه چلند کوو.

- مونږ د کور په چارو کې مرسته کوو.

- مونږ هیچا ته ضرر نه رسوو.

---

۱- رواه مسلم



## فعالیت

زده کوونکي دې د یوه مسلمان د خوی په هکله په خپلو کې خبرې وکړي.



## ارزونه

۱- د یوه مسلمان د خوی په هکله خپل معلومات ووایئ.

۲- بشپړ یې کړئ:

- موږ له مسلمانانو سره...........کوو.

- موږ د کور په ...................... کوو.

- موږ هیچا ته.................نه رسوو.



